# شریعت
ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسیس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ۷۰٤ ګڼه / سه‌شنبه ۱۱ رمضان‌المبارک ۱٤٤٦ هـ.ق / د کب ۲۱مه ۱٤۰۳ هـ.ش / ۱۱ مارچ ۲۰۲۵ میلادي





افطار: ۶:۰۲ سحر: ۴:۳۸

## سرمایه‌گذاری آذربایجان و قرغیزستان روی معادن افغانستان

وزارت معادن و پترولیم می‌گوید، معینان اسبق وزارت‌های معادن کشورهای آذربایجان و قرغیزستان در دیدار با سرپرست این وزارت به سرمایه‌گذاری روی معادن کشور علاقمندی نشان داده‌اند.

الماس بیک تومانوف، معین اسبق وزارت معادن قرغیزستان و آزر شکوروف، معین اسبق وزارت معادن آذربایجان در دیدار با ملا هدایت‌الله بدری، فرصت‌های سرمایه‌گذاری در معادن افغانستان مناسب دانسته خواهان همکاری وزارت معادن و پترولیم شده‌اند.

آقای تومانوف و شکوروف گفته‌اند که حاضر هستند...ص۳

# د پوهنې وزارت د ښوونکو او اداري بستونو د ازموینې پایلې اعلان شوې



شریعت: د پوهنې وزارت د څه باندې ۸ زره بستونو پایلې اعلان کړې، چې څو میاشتې وړاندې یې اعلان ته سپارلې وو، په دې ډله کې ۸ زره او ۸۶ یې د ښوونکو او ۷۹ یې اداري بستونه و، چې ۳۵ زره، ۶ سوه او ۴۰ کسانو ورته نومونه ثبت کړي وو او له مخې یې ۳ زره او ۷۱ کسان بریالي، ۸ زره، ۳ سوه او ۹۲ یې ریزرف او پاتې یې بې پایلې شول.

د پوهنې وزارد د کیفیت تضمین معین عبدالخالق صادق غونډه کې د ازموینې د شفافیت په اړه هم وویل، چې دغه بستونو کې یوازینی معیار پوهه ... ۳مخ

## د کتاب ارزوني کمېسیون نوبتي غونډه ترسره شوه




شریعت: د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د خپرونو چارو معینیت کې د کتاب ارزوني کمېسیون نوبتي غونډه د معین مهاجر فراهي په مشرۍ ترسره شوه. په دې غونډه کې د باختر خبري آژانس رئیس مولوي ضیاءالحق حقمل، د کاپي رایټ آمر مولوي عبدالحق حماد او د کمېسیون نورو غړو ګډون درلود. د غونډې په پیل کې د یاد کمېسیون منشي د تېرې غونډې راپور له ګډونوالو سره شریک کړ.

ورپسې ښاغلي مهاجر فراهي د کمېسیون د لاسته راوړنو او فعالیتونو په اړه خبرې وکړې او د کمېسیون کارونه یې مثبت وبلل. ۳مخ

## هېواد کې د ۳ لویو بندونو چارې بشپړې شوې



د اوبو او انرژۍ وزارت وايي چې هېواد کې د دریو لویو بندونو د جوړولو چارې بشپړې شوې دي.

د اوبو او انرژۍ وزارت وايي، دغه وزارت د هېواد د اوبو د بنسټ مدیریت او د انرژۍ د تولید په موخه سږکال د کمال خان، شاه و عروس، عمرۍ، کجکي، بخش اباد، آغا جان، پلتونې ... ۳مخ


جایګاه زن در اسلام ۲

د نسلونو ترمنځ تفاوت او د ارزښتونو بکر ۲

روژه د برکت او رحمتونو میاشت ۲

روژه او صله رحمي ۳


## د افغاني سرې میاشتې مرکزي روغتون کې زرګونه عملیاتونه ترسره شوي



شریعت: د افغان سرې میاشتې ټولنې مسئولین وایي، چې په تېرو ۱۱ میاشتو کې د افغاني سرې میاشتې مرکزي روغتون کې ۳۱۹۰ لوی او واړه عملیاتونه تر سره شوي دي. په دې اړه د افغان سرې میاشتې ټولنې د اطلاعاتو او عامه اړیکو رییس او ویاند مولوي مدثر همراز شریعت ورځپاڼې خبریال ته ویلي: چې د افغاني سرې... ۳مخ

## دایکندي کې ګڼې پروژې بشپړې شوې

د دایکندي د ټولګټو ریاست مسئولین وايي، چې د دایکندي - کندهار لویه لاره د ۴۷ میلیونه افغانیو په لګښت پراخه او بیارغول شوې ده.

په جوړه شوې مطبوعاتي غونډه کې د دایکندي د ټولګټو... ۳مخ



## سرمقاله

### پر اشغالګرو پور غرامت

ورمه ورځ یو شمېر پخوانیو جنرالانو او افسرانو د افغانستان د ایستل شویو پوځي تجهیزاتو د بېرته ستنېدنې په پار اعتراضیه غونډه وکړه. د پخوانیو جنرالانو او افسرانو ټولنې دې غونډه کې پخوانیو نظامیانو په کلکه وغوښتل چې ګاونډي هېوادونه دې د افغانستان هغه پوځي وسایط چې دوی ته لېږدول شوي، د افغانستان نظام په واک کې ورکړي. معترضینو ددې وسایطو لېږدوونکي ملي خاینین یاد کړي. دغو نظامیانو په زغرده وویل چې امریکا د افغانستان خپلې وسلې او پخواني تجهیزات د دي.دي.آر. او دیاک پروګرامونو له لارې متلاشي کړل او پر افغانستان یې له عراق او ویتنام جګړو پاتې زړې وسلې وپلورلې. دې نظامیانو همدارنګه غوښتنه وکړه چې د افغانستان د پخوانیو تجهیزاتو او جنایتونو جبیرې او غرامت ته دې غاړه کېږدي.

د پخوانیو جنرالانو او افسرانو ټولنې مشر وویل: ((امریکا د افغانستان پوځي بنسټونه ونړول، میلیونونه افغانان یې ووژل، او زموږ پرمختللې وسلې یې له کاره وغورځولې.)) پخواني نظامیان دا غونډه په داسې حال کې جوړوي چې څه وخت مخکې امریکا غوښتي وو چې افغانستان کې دې پاتې وسلې ورکړل شي. اسلامي امارت ددې غوښتنې ځواب کې وویل چې دا وسلې غنیمت دي او په دې وسلو له دین، هېواد او خپلواکۍ دفاع کوي. دې نظامیانو هم دا وسلې د افغانستان ملي شتمنۍ یادې کړې. بحث دا دی چې امریکا او ټوله کې ناتو ددې پرځای چې د وسلو غوښتنه وکړي، باید حساب کتاب ته کېنول شي او افغانستان کې د شوي قساوت غرامت دې ترې وغوښتل شي.

افغانستان کې د امریکایي او ناتو پوځیانو جنګي جنایتونه له هېچا پټ نه دي او په اړه یې لسګونه مستندونه او راپورونه شته. امریکا او ناتو ځواکونو پر افغانانو هغه لوبې وکړې چې تل به د دوی د تاریخ پر تندي تور داغ پاتې وي. د کندهار د میوند پېښه د بشر د جنګي تاریخ یوه له ټولو بوږنوونکې پېښه ده. پنجوايي کې د ملکیانو قتل عام پېښه له هېچا نه ده پټه. د انساني کرامت او پت دې ساتونکو یوازې... ۳مخ

## تیم ملی فوتبال ساحلی افغانستان رهسپار تایلند شد




ریاست عمومی المپیک، تربیت بدنی و ورزش می‌گوید، اعضای تیم ملی فوتبال ساحلی افغانستان رهسپار تیم کشور تایلند شدند.

اتل مشوانی، سخنگوی ریاست عمومی المپیک، تربیت بدنی و ورزش کشور از سفر تیم ملی فوتبال ساحلی خبر داده است.

به گفته آقای اتل، این تیم به هدف اشتراک در کمپ تمرینی و آماده شدن به مسابقات جام ملت‌های آسیا ۲۰۲۵ به تایلند سفر کرده است.

اعضای تیم ملی فوتبال ساحلی کشور پس از دیدار خداحافظی با رهبری ریاست عمومی المپیک، تربیت بدنی و ورزش و فدراسیون فوتبال، رهسپار تایلند شده‌اند.

مسابقات جام ملت‌های آسیا در بخش فوتبال ساحلی به تاریخ ۲۰ ماه مارچ، به میزبانی کشور تایلند برگزار می‌شوند.

## په کندهار کې د یو جومات رغنیزې چارې دوام لري

د ټولګټو چارو وزارت وايي، چې د کندهار په میوند ولسوالۍ کې د یو جومات رغنیزې چارې د څه باندې ۳۲ میلیونه ۴۴۸ زره ۹۹۶ افغانیو په ارزښت دوام لري، چې چارې یې اوس ۱۹ سلنه فزیکي پرمخ تللې دي.

د یاد وزارت د خبر له مخې، په دې جومات کې د نارینه... ۳مخ

## له لوګر څخه بهرنیو هېوادو ته د تازه مېوې صادرېدل



د لوګر د سوداګرۍ او پانګونې خونې مسئولین وایي، چې په روان لمریز کال کې له دغه ولایت څخه د ۸ میلیارده افغانیو په ارزښت بهرنیو هېوادونو ته تازه مېوې او سبزیجات صادر شوي دي. ۳مخ

# جایگاه زن در اسلام

ربانی

بعد از ظهور دین مبین اسلام و نزول وحی از جانب پروردگار به حضرت محمد«ص» پیروان این دین آسمانی با تمام وجود از حقوق و عفت دختران و زنان دفاع نموده‌اند.
خداوند متعال در قرآن عظیم شان و اشرف مخلوقات حضرت محمد (ص) در احادیث مبارک بارها در مورد جایگاه دختران و زنان تحت عناوین مختلف همچون مادر، دختر، خواهر و همسر تأکید ورزیده اند.
دین مبین اسلام از هیچ لحاظ بر زنان و دختران مسلمان چیزی را که به زیان‌شان باشد تحمیل نکرده است.
به همین دلیل است که امروز کارشناسان حوزه دین شناسی به این عقیده‌اند که دین اسلام یکی از فمنیست ترین دین در تاریخ ادیان جهان است.
این در حالیست که دین مبین اسلام ۱۴۴۶ سال قبل از امروز تمام حقوق زنان را بدون هیچ کمبودی و تبعیضی میان مرد و زن به او بخشیده و حکومت‌های اسلامی و مردان مسلمان را محافظ و مدافع آن قرار داده است.
این حقوق زمانی به زنان و دختران مسلمان بخشیده شده است که در آن زمان اعراب جاهل و سایر اقوام و امپراتوری‌هایی که خود را روشن فکر و متمدن می‌نامیده‌اند، وجود زن را در خانواده لکه ننگ دانسته و بعد تولد بلافاصله از ترس اینکه مردم از به دنیا آمدن دختری در خانواده ایشان با خبر نشوند، طفل معصوم را به جرم دختر بودن بلافاصله زنده به گور می‌نمودند و آن‌هایی که به لطف پروردگار زنده می‌ماندند، در آینده به عنوانی بخشی از اموال تجارتی خرید و فروش می‌شدند و بودند اقوامی در این میان که زنان را بعد از مرگ شوهر به عنوان بخشی از میراث میان اقارب شوهرش تقسیم می‌نمودند و یا با شوهرش زنده به گور می‌نمودند.
این در حالیست که بیشتر این قوام در دنیای عصری، مدرن آن هم بعد از نیمهٔ دوم قرن نوزدهم زمانی که بیش از ۱۵۰۰۰ زن کارگر و مظلوم که از نابرابری جنسیتی و عدم دست رسی به حقوق شان مانند حق رأی، امکانات و دست مزد پایین و ساعات کاری بیشتر نسبت به مردان شکایت داشتند در نیویارک امریکا علیه حکومت مردسالار تظاهرات نمودند تا آنکه مورد توجه قرار گرفته و یک روز (هشتم مارچ) را آن هم بعد از قرن ها ظلم و سرکوب زنان و نیز مبارزه فمنیست ها علیه این بی‌عدالتی از اروپا گرفته تا امریکا به عنوان روز جهانی زن اعلام نمودند. روز جهانی زن برای اولین بار در کشورهایی که امروز خود را مدافع درجه اول حقوق زن معرفی می‌نمایند مانند: آلمان، اتریش و دنمارک تجلیل شد و بلافاصله به امریکا و سایر نقاط اروپا رسید. این خود نشان دهنده آن است که رهبران و مردان این کشورها از همان اول برای زنان و دختران احترامی قایل نبوده‌اند که سرانجام زنان مجبور شدند تا برای دفاع از حقوق شان به جاده‌ها برآمده و صدا بلند نمایند.
این بدان معنا است که بی‌عدالتی، ظلم، نابرابری جنستی و محروم ساختن زنان از حقوق اساسی‌شان ریشه در همان کشورها (اروپا و امریکا دارد وگرنه چرا این صدا از کشورهای اسلامی مانند افغانستان بلند نشد. شاید آن‌ها ندانند و یا چشم بر حقایق بسته و کور کورانه کشورهای اسلامی مانند امارت اسلامی افغانستان را متهم به نقض حقوق زنان و نابرابری جنسیتی کنند؛ اما الحمدلله تمام زنان مسلمان در سراسر دنیا به ویژه زنان مسلمان و مجاهد پرور افغانستان این حقیقت را دانسته و با رضایت کامل در کنار خانواده و زیر بیرق امارت اسلامی با خواست و اراده قلبی خود با عزت و عفت زندگی می‌کنند و تنها زنانی از این روز تجلیل می‌نمایند که مورد ظلم قرار گرفته و با نابرابری مواجه اند و این شامل زنانی می‌شود که در خاستگاه تبعیض و نابرابری (امریکا و اروپا) زندگی می‌کنند و یا جاسوسان و حلقه به گوشان این کشورها در کشورهای اسلامی اند.
تجلیل کننده گان روز هشتم مارچ ادعا دارند که یکی از عوامل عمده تجلیل از روز جهانی زن مبارزه علیه نابرابری جنسیتی و دفاع از حقوق زنان است که این خود نشان دهنده آن است که زنان و دختران هنوز هم در آن کشورها تحت ظلم، نابرابری جنسیتی و عدم دسترسی به حقوق‌شان قرار گرفته و امنیت روحی و جسمی ندارند و حقوق انسانی‌شان به بدترین حالت ممکن و به گونه سیستماتیک نقض می شود. مثلاً: آن‌ها ضمن تحمیل ده ها شغل طاقت فرسا بر زنان حتی عمل زشت تن فروشی را به عنوان شغل بالای زنان قبولانده‌اند در حالی‌که اگر زنان آزادی انتخاب، امکانات کافی و حمایت مردان را داشته باشند به هیچ وجه حاضر به انجام این شغل ننگین نیستند این هم درحالست که حکومت‌های اسلامی و مردان غیور مسلمان به ویژه امارت سلامی افغانستان و مردان غیور افغانستان با تمام توان تا زمانی که رمقی در بدن دارند اجازه همچنین بی‌عزتی و بی‌عفتی را برای زنان که همانا مادران، خواهران و دختران هستند نمی‌دهند. خود زحمت می کشند تا نیاز های مشروع زنان را به بهترین وجه ممکن بر آورده ساخته تا زنان در آرامش کامل و خاطر آرام به زندگی آبرومندانه خویش ادامه دهند.
و سرانجام تمام زنان مسلمان افغانستان دانسته‌اند و پاسداری می‌نمایند از اینکه امارت اسلامی افغانستان و مردان غیور این سرزمین ضمن تلاش بیشتر برای تأمین نیازهای زنان عفیف این سرزمین از حقوق آن‌ها دفاع و حراست می‌نمایند؛ مگر جاسوسانی(زنانی) که حقوق و آزادی را در برهنه گی زیر پاگذاشتن شعایر دین مقدس اسلام می‌دانند.

# د نسلونو ترمنځ تفاوت او د ارزښتونو ټکر

محمد قاسم عزام

ټولنه د وخت په تېرېدو د تغیر په حال کې وي او د زړو او ځوانو نسلونو ترمنځ فکري تفاوت یوه نه بدلېدونکې حقیقت دی. زوړ نسل د خپلو تجربو، دودونو او ارزښتونو د ساتلو هڅه کوي، خو ځوان نسل بیا د نوښت، تغییر او د نوي فکر استازی وي. دا اختلاف د ټولنیزو ارزښتونو، د ژوند د طرز، د فکري لارو او عقیدوي باورونو ترمنځ د تضاد لامل کېږي. که دا تضاد په سمه توګه مدیریت شي، نو د تمدن د پرمختګ لامل ګرځي، خو که له زغم او تعادل پرته پر مخ ولاړ شي، نو دا شخړې او اختلافات د ټولنې د فکري زوال سبب کېږي.
زوړ نسل د خپلو تجربو پر بنسټ ارزښتونو ته ژمن پاتې کېږي. دوی باور لري چې هغه اصول، چې له نسلونو څخه راپاتې دي، د زماني ازموینه یې تېره کړې او باید وساتل شي. دوی د استقامت، ثبات، عقیدې، دود، اجتماعي نظم او اخلاقي اصولو مدافعین وي. د دوی نظر دا وي چې د بدلون لپاره دلیل نشته، ځکه دوی د خپل ژوندانه تجربې د ثبات پر بنسټ جوړې کړې دي. ابن خلدون وایي: "المغلوب مولع بتقلید الغالب" - مات شوي ملتونه د بریالیو ملتونو تقلید ته زړه ښه کوي. دا وینا د زړو نسلونو هغه اندېښنه بیانوي چې ځوان نسل د خپلې ټولنې د ارزښتونو پر ځای د پردیو اصولو منلو ته چمتو وي. زوړ نسل باور لري چې که ځوانان د نوو ارزښتونو پر لور لاړ شي، نو دا به د ټولنې اصلي هویت ته زیان ورسوي. د اسلامي تاریخ په اوږدو کې، کله چې د عباسي خلافت په زمانه کې د یوناني فلسفي کتابونه عربي ته وژباړل شول، زړو علماوو دا اندېښنه درلوده چې دا فلسفوي نظریات به د مسلمانانو فکري ثبات ته زیان ورسوي، خو ځوان نسل بیا د دې افکارو مطالعه ضروري بلله، چې بالاخره یې اسلامي فلسفه او کلام ته لاره هواره کړه.
ځوانان، برعکس، باور لري چې ټولنیز ارزښتونه باید د منطق، تحلیل او د زماني د غوښتنو له مخې وارزول شي. دوی د نوښت، ازادۍ، فردي پرمختګ او تغییر پلویان وي. دوی دا نه مني چې د هر ارزښت پیروي باید له چون‌وچرا پرته وشي. ځوان نسل غواړي چې د ژوند هر اړخ د عصري اړتیاوو پر اساس تنظیم کړي. علامه محمد اقبال وایي: "زمانه با تو نسازد تو باز با زمانه بساز" - که زمانه درسره نه جوړېږي، ته ورسره جوړ شه. دا هغه تفکر دی چې ځوانان یې تعقیبوي، یعنې که ټولنه بدلون غواړي، نو دا بدلون باید ومنل شي او ارزښتونه هم باید د دې تحولات سره برابر شي. د اسلامي تمدن د زرین دور پر مهال، ځوانانو د ساینس، ریاضي، طب، فلسفې او نورو علومو ته وده ورکړه، حال دا چې زوړ نسل د علمي نوښتونو پر وړاندې اندېښنه درلوده، خو دا تحول د اسلامي تمدن د عروج سبب شو او اروپایانو هم د همدې علمي میراث نه ګټه پورته کړه.
زوړ نسل د خپل عمر ډېره برخه په ستونزو، کړاوونو، ازموینو او مبارزو کې تېره کړې وي. د دوی لپاره ثبات، دوامداره اصول او ازموېل شوي ارزښتونه ډېر مهم دي. ځوان نسل بیا د تجربو پر ځای د احتمالاتو، تغییر او چټک بدلون پلوی وي. د علمي او ټکنالوژیکي پرمختګونو له امله، د نوي نسل افکار ډېر بدل شوي. که زوړ نسل د دودیزو طریقو له کارونې سره عادي وي، ځوان نسل غواړي چې نوې لارې غوره کړي. د دیني فهم توپیر هم د نسلونو ترمنځ د تفاوت یو مهم لامل دی. زوړ نسل دیني ارزښتونه د تقلید پر بنسټ اخلي، ځکه چې دوی د علماوو پر استنباط باور لري او فقهي مذاهب د دین د عملي تطبیق لپاره ضروري ګڼي. دوی اجتهاد د متخصصینو کار بولي او د تقلید پیروي ضروري ګڼي. ځوان نسل بیا د هر شرعي حکم فلسفه، عقلي اړخ او استدلال ته ډېر اهمیت ورکوي، دوی غواړي چې د نصوصو معناوې له خپلې فکري زاویې هم وڅېړي.
د احنافو اصولي تګلاره د نقل او عقل ترمنځ تعادل ساتي. دوی د استنباط لپاره قرآن، حدیث، اجماع، او قیاس ته مراجعه کوي. امام ابو حنیفه (رحمه الله) فرمایي: "إذا جاءنا الحدیث عن النبي صلی الله علیه وسلم علی خلاف القیاس، أخذنا بالحدیث وترکنا القیاس" - که موږ ته د نبي کریم صلی الله علیه وسلم حدیث را ورسېږي، چې له قیاس سره مخالف وي، نو موږ حدیث ته ترجیح ورکوو او قیاس پرېږدو. دا وینا څرګندوي چې احناف د حدیث پیروي کوي، خو که د حدیث تطبیق ځانګړي شرایط ولري، نو د فقهاوو اجتهاد ته مراجعه کېږي، ترڅو د شریعت مقاصد پوره شي. په همدې اساس، احناف د دیني احکامو د استنباط لپاره یوازې ظاهر نه ګوري، بلکې د احکامو د مقاصدو او د امت د مصلحتونو پر اساس د تطبیق لارې سنجوي. ځینې ځوانان د تقلید پر ځای مستقیمې دلایلو ته مراجعه کوي، خو زوړ نسل د علمي ژورتیا او د علماوو د استنباط ارزښت ته پاملرنه کوي. دا توپیر که په متوازن ډول درک شي، نو د دیني فهم پراخوالی به وساتل شي او د وخت اړتیاوې به هم پوره شي.
کله چې یو نسل غواړي خپل اصول وساتي او بل نسل غواړي دا اصول له سره تعریف کړي، نو تضاد رامنځته کېږي. که دا تضاد په سالم بحث، فکري زغم او متقابل تفاهم بدل شي، نو دا به ټولنه لا بډایه کړي، خو که دا د یو نسل د بل نسل پر وړاندې د مخالفت، سرزورۍ او تحقیر بڼه واخلي، نو پایله یې د ټولنیزو ګډوډیو، فکري افراطیت او د ټولنیز انسجام ماتېدل وي. د اسلامي تمدن په تاریخ کې، کله چې ځینې علماوو د فلسفې زده کړه بدعت وګڼله، دا د اسلامي علومو د انحطاط لامل شو، خو د امام غزالي (رحمه الله) په څېر علماوو دا تفاهم راوست چې که فلسفه له دیني عقایدو سره تطبیق شي، نو دا د علمي پرمختګ لامل کېږي.
نه زوړ نسل باید د هر بدلون مخالفت وکړي او نه ځوان نسل باید د زړو ارزښتونو نفي وکړي. که د دواړو نسلونو ترمنځ یو متوازن تعامل رامنځته شي، نو ټولنه د یو فکري بحران څخه ژغورل کېدای شي. امام مالک (رحمه الله) وایي: "لن یصلح آخر هذه الأمة إلا بما صلح به أولها" - د دې امت وروستی نسل یوازې هغه وخت اصلاح کېدای شي، کله چې د امت لومړی نسل په څه اصلاح شوی وي. دا وینا موږ ته دا راښیي چې د دیني او ټولنیزو ارزښتونو حفاظت مهم دی، خو د زماني له غوښتنو سره همغږي هم ضروري ده. د نبي علیه‌السلام په زمانه کې د ځوانانو رول ډېر مهم و، خو نبي علیه‌السلام د زړو صحابه‌وو تجربه هم نه وه نادیده نیولې. حضرت اسامه بن زید (رضي الله عنه) د ۱۷ کلونو په عمر د یوه لوی لښکر مشر شو، حال دا چې زوړ نسل د دې پرېکړې مخالفت کاوه، خو نبي علیه‌السلام یې مشري تائید کړه. دا د نسلونو ترمنځ د متقابل درک او د استعدادونو د اعتراف یو غوره مثال دی.
د تمدنونو بقا او پرمختګ هغه وخت تضمین کېږي، کله چې زوړ نسل د نوي نسل فکر ته احترام ولري او ځوان نسل د زړو ارزښتونو حکمت درک کړي. که زوړ نسل د نوښت دروازې وتړي، ټولنه له رکود سره مخ کېږي او که ځوان نسل د تجربو ارزښت ونه پېژني، نو د بې‌ثباتۍ کندې ته لوېږي. پایله دا ده چې تمدنونه یوازې هغه وخت بقا مومي، چې زوړ او نوی فکر یو بل تکمیل کړي، نه دا چې یو د بل د له منځه وړلو هڅه وکړي.

# روژه د برکت او رحمتونو میاشت

مولوي ضیاء الحق حسان / اوومه برخه

د روژې په میاشت کې باید د هغو هېوادوالو سره همکاري او مرسته وکړو چې بې وزله او مسکینان وي، نبي کریم صلی الله علیه وسلم ابوذر رضي الله عنه ته فرمایي: ای ابوذر کله دې چې شوروا پخوله اوبه یې ورزیاتې کړه او د ګاونډیانو لحاظ وساته.
په دې حدیث کې موږ او تاسو ته لوی درس پروت دی هغه دا چې باید هر ماښام د روژه ماتي پر مهال د څنګ کور هیر نه کړو له خپلو پخ شویو خوړو یو لوښی هغوی ته ورولېږو، دغه صدقه اسانه ده او زموږ د مېرمنو په وس پوره ده. نن ډېری خلک داسې وي چې بېلابېل خواړه د روژه ماتي لپاره تیاروي خو د څنګ کور یې بیا په وچه ډوډۍ روژه ماتوي.
شاعر وایي:
داسې خوشحالي دې خدای په هېڅ کور کې پیدا نه کړي
یو کور کې چې غم وي او بل خاندي له لیلی سره
مؤمنان باید د یوه وجود په څېر د یوه او بل غم درک او همکاري ورسره وکړي.
د دې میاشتې صدقه بیا د رب په نیز څو چنده اضافه کېږي، نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي: په رمضان میاشت کې سخاوت وکړئ، ځکه چې پدې میاشت کې لګښت کول د الله په لاره کې د لګښت کولو په څېر دي.
(ابن أبي الدنیا، في فضل رمضان)
دا چې لوی رب زموږ زیات مسلمان وروڼه په بېلابېلو نعمتونو نازولي دوی باید د هغه شکر ادا کړي، د مال شکر دا نه دی چې یوازې په خوله ووایي الحمدلله بلکه د مال شکر دا دی چې اثر یې درباندې ښکاره شي او له نورو سره همکاري وکړي.
بکر بن عبدالله المزني وایي، چې رسول الله «ج» وفرمایل:
«چا ته چې خیر (نعمت) ورکړل شي، خو په هغه یې اثر ښکاره نه شي، هغه د الله دښمن بلل کېږي او د الله د نعمتونو سره دښمني کوي.»
تفسیر قرطبي جلد ۲۰ صفحه ۹۵
نو بناءً موږ او تاسو ته مناسبه ده چې د خپلو مالونو څه حصه په دې مبارکو شپو او ورځو کې په بې وزله هېوادوالو ووېشو، تر څو لوی رب رانه رضا او د نعمتونو شکر یې ادا شوی وي.
نور بیا...

# روژه او صله رحمي

**ژباړه او زیادت: مولوي نورالحق مظهري**




ای روژه تیانـو! هـر وخـت صلـه رحمي وکړئ خـو د روژې په مبارکه میاشـت کې بیا خانګړې او ډېره صله رحمـي وکړئ! د صلـه رحمي وصل کـول او مراعات کول د هر مسـلمان مسـئولیت دی الله جل جلاله فرمایي: ژباړه: د هغه اللـه څخه ووېرېږئ چې په نامه يې تاسـو سـوال کوئ او د صله رحمي د پرې کولو څخه ووېرېږئ! [النساء: الآیة ۱]

همدا راز رسـول الله صلی الله علیه وسـلم فرمایي: ژباړه: جنت ته هغه څـوک نه داخلېږي چې صله رحمي پرې کوي. [متفق علیه]

همدا راز رسـول الله صلي الله عليه وسـلم فرمایي: ژباړه: څوک چې غواړي په رزق کې يې پېراخي راشي او عمر يې ډېر شي نو صله رحمي دې وکړي. [متفق علیه]

**د صله رحمی ګټې:**

– صله رحمي پر اللـه او ورځې د آخرت د ایمان راورلو شعار دی.
– صله رحمي د رزق د پېراخوالي او د عمر د اوږدوالي سبب دی.
– د صلـه رحمي پـه مراعات کولـو باندې انسان د الله پاک د رحمت مستحق ګرځي.
– صله رحمي جنت ته د داخلېدلو د اسـبابو څخه لوی سبب دی.
– پر صله رحمي کلي او ښارونه آبادېږي.
– پر صله رحمي د انسان خاتمه سمېږي.
– پر صله رحمي د مراعـات کوونکي مرتبه لوړېږي او عزت يې ډېرېږي.
– پر صلـه رحمي د انسـان لپاره ښـه نوم پاتېږي.
– پر صله رحمي محبت ډېر او عامېږي.
– صلـه رحمي هغه شـی دی چـې تولو اسماني آديانو يې پر اهميت اتفاق کړی دی.
– صله رحمي د انساني فطرت تقاضا ده.
– صله رحمي د نفس پر سـخاوت، د سيني پـر پراخوالـي، د خلقت پر ښـه والي او پر حسن وفاء باندې دلالت کوونکې ده.

صله رحمي څه شی ده؟

صله رحمي دې ته وايي چې انسـان د خپلو خپلوانو سره، تفاوت نه لري که د نسب لخوا خپلوان وي او که د دوستی او نکاح په سبب خپلوان وي احسان او نيکي وکړي او د دوی سره دوستانه او صميمي رابطه ټينګه وساتي.

صله رحمي په دې باندې کېږي چې:

– انسـان د خپلو خپلوانو ملاقات او زيارت ته لاړ شي.
– د دوی له احواله خان خبر کړي.
– دوی ته سوغات او ډالۍ ورکړي.
– د ضرورت په وخت کـې د دوی څخه يو شی وغواړي.
– د دوی مسـکين او ار انسـان ته صدقه او خيرات ورکړي.
– د مشـرانو او سـرمايه دارانو سره يې نرمي وکړي.
– د لويانو درناوی يې وکړي.
– او پر کشرانو يې شفقت او مهرباني وکړي.

**منبع: تحف رمضانية**

## له لوګر څخه بهرنیو هېوادو ته...

د مسـئولینو پـه خبـره د اوبو مهـارول او کروندګـرو تـه د دولتي خمکو پـه اجاره ورکـول د صادراتـو د زیاتوالـي لامـل کېږي.

بل پلو خيني سـوداګر وايي، چې ډېره برخه صادرات يې پاکستان ته دي، خو په هېواد کې د مېوو حاصـل راټولولو پرمهال د لارو ترل کېدو له امله له سـختو ستونزو او مالي زيانونو سره مخ کېږي.

دوی لـه حکومـت د بديلـو لارو او بازارموندنـې پـه برخـه کـې د همکارۍ غوښتنې لري.

## د افغاني سرې میاشتې مرکزي روغتون...

میاشـتې مرکزي روغتون ته هـر ورځ ۳۰۰ ناروغـان مراجعه کوي او درملنه يې په شـان ترسره کېږي.

ښـاغلي همراز زیاتـه کړه، چې پـه تېرو ۱۱ میاشـتو کې د افغاني سـرې میاشـتې مرکزي روغتـون ۱۲۰ زره ناروغانـو مراجعه کړې او نوموړي روغتون ۵۰ بستريز ظرفيت لري.

نوموړي وايي، چې دافغاني سـرې میاشـتې مرکـزي روغتـون کـې ارين وسـايل لکه چپرکتونـه د عملياتو طبي وسـايل د لابراتوار بېلا بېل شيان او داسـې نور شتون لري.

هغه وايي، چې د افغاني سـرې میاشـتې مرکزي روغتون کې عمومي داخله، عمومي جراحي، داخله اطفال، نسائي ولادي، عقلي، عصبي او نـورې برخـې فعالـې دي.دی وايي، چې افغاني سره میاشت د سـوري زره ناروغانو د درملني په موخه د لسو روغتونو لکه د اميري، آريانا، باسط، فرانسويان، ګلوبل، ملت، امير حاجي زاده، ستار مديکل او مهمند شفاخانو سـره هوکړې لاسـليکونه کړي دي.د افغاني سرې میاشـتې تولني موخه د انسانانو ژوندي سـاتلو، روغتيا د پېښو، وسـله والو شخړو او نـورو بېړنیو حالاتو کې، په خپلواکه مرستې کول دي .

**سميع الله مومند**

## د پوهنې وزارت د ښوونکو او اداري بستونو...

وه او له همـدې يوې لارې خلـک برياليي او بې پایلې شـوي او د برياليو اشـخاصو د ګمارنې پروسـه به هم ډېر ژر پيل شي. هغه زياتـوي چې له دې کسـانو سـره د پوهنې وزارت، رياستونو او ښـوونخيو کمښـت راډک شـي، د پوهنې کيفيت به لوړ شـي او شاوخوا۱۰ زره کسانو ته به کار پيدا شي.

ښاغلي صادق نوموړی وزارت د نورو ادارو ترخنګ د زره تشـبه ورکړه او زياته يې کړه، چې که د دغې برخـې کيفيت به برابـر وي. نوموړي لـه نورو اداراتو هم وغوښـتل چې د پوهنې وزارت ته دې پام وکړي او د اصلاح له لارې يې نورې اداري هم اصلاح شي.

هغـه زياته کړه چـې نن د ښـوونکي هغه حيثيت لـري، چې بل هېڅـوک يې نلري. هغه ښـوونکو ته په خطاب کـې زياته کړه چې تاسـې د خپلې برخې مسـئول يئ او د زده‌کوونکو پوهې تـه پوره پوره پام وکړئ او هڅه کوئ چې معاشونه مو هم لوړ کړو.

د ازمويښـې ملـي اداري رئيـس عبدالباقي حقاني وويـل چـې د نـرې هېوادونه د پرمختګ لپـاره دوه اساسـي لاملونه لري، چـې يوه يې عصري پوهه او بل يې کار اهل کار ته سپارل دي. ښاغلي حقاني وايي چې د ازمويني ملي اداره داسې سيستمونه لري، چې د سيمې له هېوادونو څخه کم نه دی. نومـوړي دا هم وويل چې تر اوسـه په دغه ازموينه کې هيڅ شکايت نه دی شوی، تول کاندوټال دا‌من دي او د ريـزرف کسـانو په ګډون يکي ۱۱ زره، ۴ سـوه او ۳۹ کسـان برياليي شوي دي.

د لوړو زده کړو وزارت اداري او مالي معين محمد حميد حسـيب وويـل چې د پوهنې وزارت احاطـه ډېره زياته ده او هر ماشـوم ته د پوهې زميني برابرولو مسـوولیت د دې وزارت په غاړه دی.

هغه زياتـوي چې معلم دهـر دروند صفت لري او هر کس چې ښوونکی کېږي، نو بايد د ښوونکي له صفاتو خبر وي او په خان کې يې پيدا کړي. دی زياتوي چې ښـوونکي که ښـه طريقه کېښـودلو نو تر هغې به يې کته ور رسـېږي، تر څو چې ترې کته اخيسـتل کېږي.

د پوهنـې وزارت د نشـراتو او عامه اړيکو رئيس حبيب الله قتاده وويل چې پخوا دغه برخه مو ولس له زياتو سـتونزو سره لاس و ګريوان و او د اسلامي امارت په راتګ سره اوس دلته خلـک په خپلواکه او امن توګه زده‌کړې کوي. د نوموړي وزارت د ښـووني او روزنـې معيـن سـخاالله سـعيد هم له ښوونکو په برياليي کسـانو ته مبارکي ووېله او له بې‌پايلو يې د همت غوښـتنه وکړه، چې په وينا يې دغـه وزارت په راتلونکي کې هم بستونه اعلانوي او هلته بيا ازمويني ورکولی شـي.

**تاج محمد بهار**

## لوګر کې ۵۰ ښوونځیو دانې...

د عرب په خبره، د جوړېدو په دغو چارو کـې د ښـوونخيو د ودانيو، دروازو، کړکيـو ، ډبوالونو او نورو ارينو ملحقاتو رنګول او د اساسـي جوړولو کارونه شـامل دي، چې په بيا رغېدو سـره به يې شاوخوا ۴۰ زره زده کوونکو ته د زده کړو زمينه لاښه برابره شي.

بل لور تـه د لوګر اوسـېدونکي د يادو ښـوونخيو له رغونـې هرکلی کـوي او د کارونـو د ژر پيلېـدو غوښتنه کوي.

## سرمایه‌گذاری آذربایجان و قرغیزستان...

روی معادن نفت‌وگاز کشور و ساخت لابراتـوار معيـاری سـرمايه‌گذاری کنند.

در خبرنامـه بـه نقل از سرپرسـت وزارت معادن و پترولیم آمده اسـت: ایـن وزارت بمنظور جلب و جذب و ایجاد تسـهیلات بیشتر برای سرمایه گذاران خارجی تلاش نموده و در این زمینه هر نوع همکاری لازم را مطابق به قوانین معادن خواهند نمود.

## هېواد کې د ۳ لويو بندونو چارې...

او پاشـدان د اوبـو بندونـو د پاتې چـارو کارونه پيل کـړي او له دې منخـه بيـا د کمال خان، شاه و عـروس او عمـري بندونـو چارې بشپړې شوي دي.

د دغـه وزارت ويناد وايي، د هرات د پاشـدان د اوبو بند چارې بيا ۹۵ سـلنه پرمـخ تللـي او د پکتيکا د پلتوني بند ۲۰ سـلنه چارې بشپړې شوې دي.

## آغاز کار ساخت دو شبکه...

۲۰ متـر مکعـب، نصـب ۳۳۰ شـير دهـن آب، منتـاژ چنديـن تختـه سـولر، و پايپ‌دوانـی بيـش از ۱۰ هـزار متـر سـاحه از بخش‌هـای ايـن پـروژه به شـمار می‌رود.

با تکميل کار اين دو شبکه آب‌رسانی زمينـه دسترسـی ۶۰۰ خانـواده بـه آب آشـاميدنی صحـی فراهم می‌شود.

دو روز پيش نيز دو شبکه آب‌رسانی بـه ارزش بيش از ۱۳ میليون افغانی در ولسـوالی ناوه ولايت غزنی نيز آغاز شد.

## د کتاب ارزونې کمېسیون نوبتي...

د غونـدې په ترڅ کې د کمېسـيون غـړو د ورسـپارل شـويو کتابونـو پـه اړه خپـل ګزارشـونه وړاندې کړل او پـه اړه يې لازمـې پرېکړې وشوې.

همدارنګه، نوي کتابونه د کمېسيون غړو تـه د ارزونـې لپاره وسـپارل شـول، څو په راتلونکې غونډه کې خپل راپورونه وړاندې کړي. په پای کې د کمېسيون منشـي د راتلونکي غونـدې پـه اړه توضيحات وړاندې کـړل.

**نذیر منیب**

## دایکندي کې ګڼې پروژې...

رييـس اکرام‌اللـه عبدالرافـع وويـل چـې پـه دې پروژه کې د دايکنـدي د پاتـو ولسـوالۍ د ته‌پ لادوګک له سـيمې څخـه د ارزکان ګيزاب ولسـوالۍ د مولوي شـهيد راهنمـا کوتـل پـورې د ۵۲.۲۲۵ کيلومتـره پـه اوږدوالي سـړکونو، پلونه، پلچکونو، ويالو او سـاتندوی ډبوالونو جـورول، بيارغول او ترميم شامل و، چې چارې يې بشـپړې شـوې دي. نوموړي زياته کړه، چې همداراز د دايکندي ولايت مقام په مالي ملاتړ په دغه ولايت کې د ۲۷ ميليونه افغانيو په لګښت ۳۸.۲۵ کيلومتره په اوږدوالي او د تولګتو رياست په مالي ملاتـړ ۱۳.۹۷۵ کيلومتره ببلابېـل سـړکونه رغول شوي دي.

## له اسلامي ارزښتو او افغاني کلتور...

دوی تـول صميمـي، ميلمه پال او د طبيعي او تاريخي سـيمو د کتو په پـار راغلي و، خـو د افغانانو ديني عقيـدې، ميلمه پالنې او اسلامي اخلاقو پرې اغېز وکړ او مسـلمان شو.

محمـد اکبـر د ايمـان راوړلو پر مهال وويل: «زه د افغانانو له ديني عقيدې او ډلند څخه متأثر شـوم، له ديني ارزښتونو ډک ژوند لري.»

د افغانسـتان د ګرځندوی رياست مسـوولين وايي، د بهرنيو سيلانيانو راتـګ نـه يـوازې د دغـه هېواد فرهنګـي انځـور نړی تـه وړاندې کـوي، بلکـې لـه نړيوالو سـره د اړيکـو پراخېـدو تـه هـم زمينه برابروي.

## په کندهار کې د یو جومات...

او ښـځينه لمونـځ کوونکو لپاره په جـلا توګه د اوداسـه او لمانځه ځايونـه پـه نظر کې نيول شـوي دي.

د ويلـو ده، چې د يـاد جومات په جوړېدو سره به د کابـل - هرات لويې لارې د تلونکـو هېوادوالو د اوداسـه، لمونځ او د وسايطو لپاره د تمځای په برخه کې اسـانتياوې رامنځته شي.

## پر اشغالګرو پور...

افغانستان کـې نه، تولـه نړی پر تېـی کېنولـي. پـه تېـر يونيم کال کې پر ګړو قيامت نه و؟ له دومره جنايتونونو سره سره نړيوالې محکمـې يـوه ورخ دوی د عدالت تر ميز راوسـتل؟ ددې پرځای چې دا مجرمين مجازات شـي، په کراتو مکافات نه شول؟

د افغانسـتان د نظام او خلکـو غوښـتنه هم همدا ده چې کاونډي هېوادونه دې له افغانسـتانه اېستل شـوي تجهيزات بېرتـه افغانانو ته ورکـړي او د دوه اړخيـز درنـاوي پـه رنـا کـې دې لـه افغانسـتان سـره غـوره اړيکـو تـه ادامـه ورکړي.

افغـان حکومـت بايد هېـواد کې دننـه د تجهيزاتـو او بهـر کـې د تجهيزاتو په تراو همداسـې غوڅ دريـځ وسـاتي او آن پـه نړيواله کچـه دې د غرامـت غوښـتنه وکړي.

# افغان اعلانات

Shariat Daily

Shariat
Published by
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

شریعت
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسئول مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برېښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک خلور لاري، د حضوري چمن څنګ، کابل ـ افغانستان
شماره توزیع و شکایات: ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶ / ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Tuesday 11 March 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 704

د ازموینو ملي اداري سرپرست:

# په ازموینو کې زموږ معیار وړتیا او استعداد دی



د ازموینو ملي اداري سرپرست شیخ عبدالباقي حقاني وایي، چې د پوهنې وزارت له لوري د ۸ زره ۱۶۵ اداري او د ښوونکو خالي بستونو د کمارنې په موخه د ازمویني بهیر په شفاف او عادلانه توګه ترسره شو.

ښاغلي حقاني ویلي، په ازموینو کې زموږ معیار وړتیا او استعداد دی، د نوموړي په خبره، هغه کسان چې په دې بهیر کې بریالي کېږي؛ د علم او پوهې په ګانه سمبال وي.

د ازموینو ملي اداري سرپرست نن د یادو بستونو د ازمویني د پایلو په اعلان غونډه کې ټولو بریالو کسانو ته مبارکي وکړې او ټینګار یې کړی، چې دغه کسان دې نظام او ولس ته صادقانه خدمت وکړي.

# وزارت صحت عامه خواهان مبدل شدن تیم‌های سیار صحی به مراکز ثابت صحی است



مولوی نور جلال جلالی، سرپرست وزارت صحت عامه در دیدار با کوابینا آسانتی، مسئول UNFPA در افغانستان خواهان مبدل شدن تیم‌های سیار صحی به مراکز ثابت صحی شده است.

در این دیدار در مورد مدیریت بهتر کمک‌های صحی در افغانستان، تقویت سیستم صحی، موثریت تیم‌های سیار صحی و تغییر آنان به مراکز ثابت، ارایه خدمات صحی مطابق پالیسی وزارت صحت عامه و تطبیق خدمات بر بنیاد اولویت‌ها گفت‌وگو شده است.

سرپرست وزارت صحت عامه گفته که موثریت ارایه خدمات صحی تیم‌های سیار در صورت مبدل شدن به مراکز ثابت بیشتر خواهد بود.

او همچنان به برابر شدن ارایه خدمات صحی به پالیسی‌های وزارت صحت عامه و مدیریت بهتر کمک‌های بین‌المللی به سکتور صحت، تأکید کرده است.

# از قاچاق مس به بیرون از کشور جلوگیری گردید

مقام‌های قول‌اردوی ۲۱۵ عزم می‌گویند، از قاچاق یک موتر باربری حامل مس به بیرون از کشور از سوی منسوبین این قول‌اردو جلوگیری شده است.

بربنیاد خبرنامه، منسوبین لوای هفتم سرحدی قول‌اردوی ۲۱۵ عزم یک موتر باربری حامل مس را در ساحه «هزار جفت» ولسوالی گرمسیر ولایت هلمند متوقف و از قاچاق آن جلوگیری کرده‌اند.

به گفته مسئولین مطبوعاتی قول‌اردوی یادشده این موتر در نتیجه اطلاعات کشفی ضبط‌شده است.

در خبرنامه آمده که موتر متذکره همراه با مس آن به منسوبین وزارت امور داخله تسلیم داده شده است.

در مورد این که آیا در پیوند به قاچاق موتر حامل مس کسی بازداشت شده و یا خیر، چیزی گفته نشده است.

# لوګر کې د ۵۰ ښوونځیو ودانۍ رغېږي




د لوګر ولایت پوهني ریاست ویاند شاه پور عرب رسنیو ته ویلي،چې په راتلونکي ۱۴۰۴ ښوونیز کال کې د لوګر مرکز او ولسوالیو د ۵۰ زیانمن شویو ښوونځیو ودانۍ بیا جوړیږي.

عرب زیاته کړه، چې دا ښوونځي د پوهنې له وزارت سره په همغږۍ د پوهنې یوې مرستندویې موسسې له خوا بیارغول کیږي، چې ټول لګښت یې شاوخوا ۴۵۰ زره امریکایي ډالره اټکل شوی دی.

۳مخ

# افغانستان مقام سوم مسابقات فوتسال چهارجانبه سلسائو را به دست آورد



فدراسیون ملی فوتبال کشور اعلام کرده که تیم ملی فوتسال در مسابقات بین قاره‌ای سلسائو، مقام سوم را بدست آورده است.

به گفته فدراسیون فوتبال، تیم ملی فوتسال کشور با پیروزی در برابر تیم گرینلند، موفق شده مقام سوم مسابقات یادشده کسب کند.

مسابقه میان تیم‌های افغانستان و گرینلند عصر روز گذشته برگزار شده و تیم ملی فوتسال کشور در ضربات پنالتی تیم گرینلند را شکست داده است. مسابقات چهار بین‌المللی سلسائو، میان تیم‌های افغانستان، برازیل، ایران و گرینلند از چند روز به این سو راه اندازی شده است.

# له اسلامي ارزښتونو او افغاني کلتور څخه اغېزمن کاناډایي مسلمان شو

د ننګرهار د اطلاعاتو او کلتور مسئولینو ویلي چې دې ولایت کې یو کاناډايي وګړي د افغاني کلتور او اسلامي ارزښتونو نه په اغېز د اسلام مبارک دین ومانه.

د نوموړي نوم اډوارد اندریاس څخه محمداکبر ته اوښتی.

د ننګرهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست د ګرځندوی ... ۳مخ

# آغاز کار ساخت دو شبکه آب‌رسانی در غزنی



کار ساخت دو شبکه آب‌رسانی به ارزش ۱۲ میلیون و ۶۸۰ هزار افغانی در مربوطات ولایت غزنی، آغاز شد.

قرار است این دو شبکه آب‌رسانی در قریه‌جات «حسن و گالی» ولسوالی گیلان ولایت غزنی ساخته شود.

مسئولین محلی ولایت غزنی گفته‌اند که ساخت دو ذخیره آب هرکدام به ظرفیت... ص۳




عباس عراقچی:

# تحت فشار و ارعاب مذاکره نخواهیم کرد



سید عباس عراقچی، وزیر امور خارجه ایران می‌گوید، کشور تحت شرایط فشار و ارعاب با امریکا مذاکره نخواهد کرد.

وزیر امور خارجه ایران افزوده، برنامه هسته‌ای کشور صلح‌آمیز است و اساساً چیزی به نام «نظامی‌سازی بالقوه وجود ندارد.

او تاکید کرده که برنامه هسته‌ای ایران همیشه صلح‌آمیز بوده و خواهد ماند.

به گفته عراقچی، در گذشته هرزمانی که ایران محترمانه برخورد کرده مورد احترام قرار گرفته است.

این در حالی است که در روزهای اخیر رئیس جمهوری امریکا پیشنهاد مذاکره با ایران در مورد برنامه هسته‌ای اش را داده است.

# مارک کارني د جسټن ټروډو ځایناستی شو



د کاناډا د مرکزي بانک پخوانی مشر مارک کارني د دغه هېواد د لیبرال ګوند د نوي مشر په توګه وټاکل شو.

نوموړي د ۸۶ سلنه رایو په ګټلو سره په دې ګوند کې د کاناډا د لومړي وزیر جسټن ټروډو ځای خپل کړ.

د راپورونو لـه مخې، له دې وروسته به کارني پرېکړه وکړي چې په کاناډا کې سراسري ټاکنې څه وخت ترسره شي.

دا په داسې مهال ده، چې د کاناډا لومړي وزیر جسټن ټروډو له نهو کلونو وروسته د کاناډا او د لیبرال ګوند مشري پرېښووه

# احمد الشرع د ملکي کسانو د وژنې پېښې په تړاو د پلټنې ژمنه کړې

د سوریې لنډمهالي ولسمشر احمد الشرع د خپلو خواکونو له لوري د ملکي علویانو د کړ وژنې پېښې په تړاو د پلټنې ژمنه کړې ده.

د سوریې د بشري حقونو یوې ډلې ویلي، چې د مارچ له شپږمې را پدې خوا د سوریې امنیتي ځواکونو د اقلیت علویانو په سیمه کې ۹۳۷ ملکیان وژلي دي.

یاد تاوتریخوالي په داسې مهال شوی، چې تېره سه‌شنبه د پخواني بشارالاسد رژیم پلویانو په سوریې کې شورشونو ته لمن وهله.